دَ "اوچ" نه تمته تهٔ راغے - په ځنه دَ بادشاه لښکر ته ورغے - هلته ډیر په قدر او عزت یې استقبال اوشو - دَ تمته خلق چه دَ دوی دَ تشریف راوړلو نه خبر شول هغوئ هم ډیر خوشحال شول چه اوس به خدائ خیر کړی.
چنانچه حضرت مخدوم جهانیان دَ مسلمانانو د دے دواړو لښکرو ترمنځه شو صلح یې راواسته دَ پاره دد ے چه دواړه طرف ته مسلمانان دی. چه دَ مسلمانانو دَ لاس نه دَ مسلمان وینے اونه بهیږی -

دد ے پورتنو روایتونو له مخه دَ سنه ۷۶۰ ه نه تر سنه ۷۶۶ ه پورے په اوچ کښ دَ دوی موجود والے معلومیږی او څو نږ سره څه داسے روایت نشته دے چه په دغه منځ کښ دوی دَ حج بیت الله دَ پاره تشریف وړے وو. که نه - د دے نه علاوه یو دوه نور روایتونه داسے دی. چه دَ هغے نه دَ دوی دَ دریم سفر او سیاحت پته معلومیږی -

الف | په دے کښ یو روایت دَ تاریخ فرشته (جلد ۲ صفحه ۴۱۶) دے. چه حضرت مخدوم جهانیان په سنه ۷۷۲ ه کښ دَ حج دَ سفر نه او سیاحت نه راواپس شوے دے.

ب | او دویم روایت دَ تاریخ صولت افغانی دے. چه حضرت خواجه بحر کبیر غورغشتی دَ خپل پیر طریقت حضرت مخدوم جهانیان علیه الرحمة په ملګرتیا کښ په سنه ۷۷۰ ه کښ حج کړے وو. او د دے حج ګذارلو نه مخکښ دوی دَ خراسان بخارا. عراق سیاحت کړے وو. او دهغه زمانے دَ مشاهیر و اولیاء الله سره یې صحبتونه شوی وو-

دد ے پورتنو دواړو روایتونو نه مونږ دا نتیجه اخیستلے شو. چه حضرت مخدوم به دا دریم سفر دَ سنه ۷۶۷ ه په شا وخوا کښ کړے وی. او دَ پنځه کاله سیاحت نه پس به په سنه ۷۷۲ ه کښ واپس بهاولپور ته راغلے وی-



سنه ۷۷۲ ه نه تر سنه ۸۰۰ ه پورے په دے منځ زمانه کښ دَ حضرت مخدوم سفر او سیاحت څه ذکر ځما دَ نظر نه نه دے تیر شوے - نور تحقیق غواړی البته دَ سنه ۸۰۰ ه نه تر سنه ۸۰۴ ه پورے په اوچ کښ دَ دوی موجود والے دَ یو بل واقعے نه ضمناً معلومیږی - او هغه دا ده. چه هر کله ... اختلاف دَ روایاتو سره په سنه ۸۰۰ ه یا سنه ۸۰۳ ه یا سنه ۸۰۴ ه کښ حضرت شیخ علاء الحق قطب بنګال علیه الرحمة وفات کیده. نو هغه دا وصیت کړے وو. ... ځما دَ جنازے دَ امامتی مونځ د ے دَ مخدوم جهانیان نه په غیر بل څوک ... ګذاری. دَ حضرت شیخ مریدان د دے خبرے په آورید لو حیران شول. په هغه وخت شیخ علاء الحق وفات شو - جنازه یې دَ مانځه دَ پاره په میدان ... کښ کښېښودل شوه - نو چه څه کوری حضرت مخدوم جهانیان دَ صفونو ... مخکښ ولاړ وو - او دَ جنازے امامتی یې ادا کړه. بیا حضرت مخدوم دَ دغے ... دَ وستو څه ورځے نور هم په بنګاله کښ مقام کښ پاتے شو. کنږ خلق ... یې مریدان شول. دَ حضرت "نور قطب عالم" تربیت یې اوفرمائیلو ... هغه یې دَ حضرت شیخ علاء الحق په ګدۍ کښېنولو. نو بیا واپس اوچ ته راغے.

بهرحال هر کله چه حضرت مخدوم جهانیان په اول ځل دَ ... په سیاحت روان شو - او دَ حج په موقع بیت الله ته اورسیده. هلته په مکه مکرمه کښ یې دَ حضرت شیخ عفیف الدین عبدالله ... مطروی نه بیعت اوکړو - ورپسے اوه کاله نور په مکه مکرمه کښ دَ ... هغوی په خدمت کښ تیر کړل - دَ سلسله سهروردیه دَ مشر ... بزرګ حضرت شهاب الدین سهروردی مشهور کتاب عوارف ... المعارف یې دَ هغوئ نه په درس اولوستلو. دَ هغوی نه یې هم خرقه ... خلافت حاصله کړه - او بیا هم د دے شیخ علیه الرحمة دَ ارشاد ... مطابق ګګا ذرون ته لاړ - او هلته یې دَ حضرت شیخ امین الله

ګاذرونی نه فیض اوموندلو اوخرقه دَ خلافت او تبرکات ېې حاصل کړل. دَ هغوی په خدمت کښې څه موده تیره ولو نه پس بیا روان شول. او دَ مصر. شام. عراق عرب. عراق عجم. بحرین. قطیف. یمن او عدن بصره او کوفه. دمشق او لبنان. مدائن. بلخ. بخارا. سمرقند. ایران شیراز. تبریز. نیشاپور. غزنی. کابل. کوه سلیمان. خراسان. دهلی پیښور او بنګال وغیره ملکونو سفرېې اوکړو. او په دغه منځ کښې شپږ ځله حج ېې هم اوکذاره. او هم دا اولنی سفر وو. چه د دے نه په ۷۵۰ھ کښې ملتان ته راغلے وو. لکه چه مخکښې ورته ضمناً اشاره شویده. روایت دَه چه په دے سفر کښې په آخری ځل دَ حج دَ ګذارلو په موقع دَ بیت الله نه واپس کیده. نو هلته په مکه مکرمه کښې دَ حضرت شیخ عبدالله یافعی نه هم فیض حاصل کړے وو. او بیا هم دَ دے حضرت امام یافعی دَ ارشاد مطابق مخدوم جهانیان چه ملتان ته واپس راورسیدلو نو بیا دهلی ته لاړ او هلته ېې دَ حضرت خواجه نصیر الدین چراغ دهلوی نه په سلسله چشتیه کښې بیعت کړے وو. او خرقه دَ خلافت ورنه حاصل کړے وه. شاید هم دَ دے تعلق په بناء چه کله خواجه نصیر الدین چراغ پرکوشش سره په ۲۴ محرم سنه ۷۵۲ھ کښې فیروز تغلق بادشاه شو. نو هغه دَ مولانا رکن الدین په ځائی حضرت مخدوم جهانیان ته دَ شیخ الاسلام او صدر الصدور عهده ورکړے وه.

## کرامتونه

حضرت سیّد اشرف جهانګیر سمنانی په خپلو مکتوباتو کښې لیکی چه ډیر خوارق او کرامتونه دَ حضرت مخدوم جهانیان نه صادر شوی دی. په متاخرینو بزرګانو کښې دَ بل یو بزرګ هم نه دی نصیب شوی. دَ تبرک دَ پاره دَ دوی دَ کرامت یو څو واقعات دلته درج کوو:-



1 دَ دوی دَ کرامت یو مشهور واقعه دا دَه. چه وړاندے دَ حضرت شیخ علاء الحق الملقب په "قطب بنګالی" او "شیخ علائی" دَ جنازے په وخت کښې پنځه وه ته دَ دوی رسیدل وو. دَ سلوک او تصوف په اصطلاح کښې دا یو مرتبه دَه. چه دیته "طے مکان" او "طے زمان" وئیلے شی. کوم بزرګ چه دَ ابدالو او یا دَ قطب په مرتبه وی. هغه ته دغه "طے مکان" مرتبه حاصله وی. او دَ سترګو په رپ کښې دَ دنیا دَ یو سر نه بل سر ته رسیدلے شی. دَ مخدوم جهانیان دَ کرامت دا واقعه چه دَ حضرت علاء الحق دَ وفات نه پس عین دَ هغه دَ جنازے دَ مونځ ګذارلو په موقع مخدوم جهانیان دَ اُوچ بهاولپور نه په یوه لحظه ساعت کښې پنځه وه ته رسیدلے وو. دا دَ "طے مکان" مرتبه دَه. چه هر یو قطب او هر یو ابدال ته حاصله وی. دَ دے مرتبے مطلب دا وی چه دَ زمکے تنابونه او فاصله رالنډه شی. دَ حضرت شیخ عبدالقادر جیلانی قدس سره دَ "اسبوع شریف" په دے جمله کښې "هُوَ الْقَرِيبُ الَّذِي يَمْحُو جِهَاتِ الْقُرْبِ وَالْبُعْدِ عَنْ عُيُونِ الْعَارِفِينَ" کښې هم دے ته اشاره دَه. په دے پسے چه دَ "طے زمان" کومه مرتبه دَه. دَ هغے یو مثال به روستو دَ حضرت شیخ عبدالغفور نقشبندی پښاوری په تذکره کښې راشی.

2 حضرت مخدوم سیّد اشرف جهانګیر سمنانی لیکی: چه حضرت مخدوم جهانیان دَ حضرت شیخ عبدالقادر جیلانی سره بے دریغه عقیدت لرلو. په دے سلسله کښې روایت دے. چه یوه ورځ حضرت مخدوم جهانیان په خپل خانقاه کښې ناست وو. چه ناسا په دا وښو باندے یو تهوپ اوراولګیدلو. لمبے ېې وهلے. حضرت مخدوم جهانیان یوه چونګړئی خاوره را پورته کړله په اوچت آواز ېې دا الفاظ ولوستل. "یا شیخ محی الدین عبدالقادر جیلانی". او هغه چونګړئی خاوره ېې دَ اور طرف ته ګذار

کړله. دَګذارلو سره سم په هغه ساعت فوراً هغه اوږداسے مړ شو. لکه چه نوم نښان یۓ نه وو.

۳ روایت دے. چه یو ځل حضرت مخدوم جهانیان دَاوچ په جامع مسجد کښې دَ ګڼړو عالمانو او درویشانو سره ملګرتیا کښې معتکف وو. چه په دے منځ کښې د هغه وخت دَ اُوچ حاکم د دوئ زیارت له راغے. حاکم چه دَ مخدوم جهانیان نه ګیرچاپیره دَ درویشانو دومره ګڼړه ولیدله. نو په ډیر و درویشانو یۓ دبکه دهړکه اوکړله. او دَ جماعت نه یۓ اوکښل. دَ حضرت مخدوم جهانیان چه ورته فکر شو. نو حاکم ته یۓ اووئیل "اے بد بخته ته لیونے شوے یۓ چه درویشانو ته تکلیف ورکوے". چنانچه دَ مخدوم جهانیان دَ خولے نه دا الفاظ وتلے وو. چه سمدستی حاکم لیونے شو. جامے یۓ اوشلولے. او په لار و کوڅو کښې زغلیده. ډیر په مشکله خلقو راقابو کړلو. او په پښو کښې یۓ ورته زنځیرونه واچول. دَ دغه حاکم بوډا پلار دَ حضرت مخدوم په خدمت کښې حاضر شو. معافي یۓ اوغوښتله. حضرت مخدوم پرے رحم اوفرمايه. ورته یۓ او وئیل چه لاړ شه. ځوئ له دے غسل ورکړه. نوے جامے ورته واغونده. بیا یۓ دَ حضرت شیخ جمال خندان روزیارت له بوځه. چه زیارت اوکذاری. بیا یۓ دلته راوله. دَ حاکم پلار لاړ. چه څرنګ ورته هدایت شوے وو. دَ هغے تعمیل یۓ اوکړ. او چه هغه لیونے یۓ دَ حضرت مخدوم جهانیان مخے له راووست. په هغے دم روغ شو. بیا دَ حضرت مخدوم مرید شو. او دَ کمال درجے ته اورسیده.

## مبارک اخلاق

حضرت مخدوم جهانیان به دَ غیر شرعي رسمونو څخه ډیر پرهیز کولو. تردے حده چه په غیر شرعي تعظیم لکه پښے ښکلول یا پښو ته را ښکته کیدلو به خفه کیدلو او دا خبرے به یۓ قطعًانه خوښولے. که څوک



مرید به راغے. او دَ عزت په خاطر به یۓ دَ دوئ دَ پښو ښکلولو کوشش کولو نو هغه به یۓ پښو ته را ښکته کیدلو ته نه پریښودلو. او نه به یۓ کوم مرید ته دا اجازت ورکولو چه هغه راشي. او د دوئ په پښو کي سر کیږدي.

یو مرید د دوئ په تعریف کښې یو نظم لیکلے وو. په هغے کښې دَ حضرت مخدوم دَ نامے سره "سید السادات" مه وایۓ بلکه "ګدا یۓ عالم" رانه وایۓ. که فکر اوکړو د دوئ دا قول په ډیره تواضع دلالت کوی.

دَ دوی په طبیعت کښې ډیره زیاته خاکساری او کسر نفسی وه. دے خبرے مثال دا دے چه یو ځل خواجه شیخ شرف الدین احمد منیری بهاری سهروردی خپلے پنړے دوئ ته راولیږلے. غرض یۓ دا وو. چه زه ستاسو دَ پښو میارکو دَ پنړو په مثال یم. دَ هغے په جواب کښې حضرت مخدوم ورته خپل پټکے اولیږلو. مطلب یۓ دا وو. چه ته ځما دَ پاره دَ "سرتاج" یۓ.

حضرت مخدوم به دَ سماع (قوالی) آوریدلو نه ډیر زیات پرهیز کولو. فرمایئل به یۓ په سماع کښې اختلاف دے. لیکن دا د هغه سړی دَ پاره مباح کیدلے شی. چه دَ قوالي اوریدلو اهلیت لري. (د لته دا یادلرل پکار دی چه دَ لفظ سماع لغوی معنی دَه آوریدل. او په اصطلاح کښې صرف هغه قوالي ته سماع وائي. چه خوش آوازئ سره حمد او نعت اولوستے شي. دَ زمانے په تیریدلو عارفانه او دَ صوفیانو کلام چه هغه فحش نه وی. دَ هغے آوریدل هم په دے تعریف کښې شامل کړے شول. لیکن دَ درے شرطونو دَ پابندئ سره چه قوالی کونکے به ښځه نه وی. پی مخ هلک به نه وی. او ډنګ ډونګ یعني ساز او سرود به ورسره نه وی. که دا څیزونه ورسره وی. نو بیا په اتفاق دَ ټولو علمانو سره دغه سماع او قوالی ناجائزه دَه. دَ حضرت شیخ نظام الدین اولیاء په کتاب کښې راوړی دی.

چه یوه ورځ د حضرت شیخ نظام الدین اولیاء نه چاپتپوس اوکړو چه یا شیخ! فلانکے بزرګ خود قوالئ په وخت کښ ساز او سرود هم ورسره آوری. نو حضرت سلطان المشائخ اوفرمائیل. چه دا حرام کار دے او که بالفرض یو بزرګ حرام کار کوی نو د بزرګ په فعل هغه حرام کار نه حلالیږی. بلکه دا سے وایه چه یو سړے ځان ته بزرګ هم وائی او خلاف شریعت کار هم کوی.)

د حضرت مخدوم جهانیان لوئ کار د دین اسلام تبلیغ او نشر و اشاعت وو. بے شمیره کفار او مشرکین د د وئ په مبارکو لاسو نو مسلمانان شوی او په ایمان مشرف شوی وو.

## (وفات)

د عامو تذکرو د روایت مطابق په ورځ د چارشنبے چه د غه د لوئ اختر ورځ هم وه. یعنے د ذالحجه لسم تاریخ وو. په سنه ۷۸۵ه کښ وفات شو. لیکن مفتی غلام سرور لاهوری ځینو کتابو کښ ئے تاریخ وفات سنه ۷۸۸ه بیان کړے دے. او د وفات ماده د تاریخ ئے دا جمله لیکلے ده. (مخدوم زمان) ۷۸۸

مزار مبارک ئے په اوچ بهاولپور کښ دے. او مرجع د عام او خاص ده. اوچ د یو مشهور تاریخی مقام نوم ده. چه په سابق ریاست بهاولپور کښ واقع ده. او د ملتان نومے ښهر ته جنوب مغرب طرفته د (۷۰) میلونو په فاصله کښے ده.

## (ملفوظات)

د د وئ ملفوظات چه د د وی مریدانو د کتاب په شکل کښ راجمع کړیدی د هغو د کتابونو نومونه دا دی. خزانه جلالی. سراج الهدایه. جامع العلوم په دے کتابونو کښ د تصوف ټول حقایق او د علم اخلاق مسائل په ډیره ښکلے طریقه سره بیان شوی دی. چه د عامو مسلمانانو د روحانی مذهبی او اخلاقی اصلاح د پاره ډیر زیات فائده لرونکی کتابونه دی.



## خلیفه ګان

روایت دے چه د حضرت مخدوم جهانیان د مریدانو ټول تعداد یو لکه دوه لکه او یاره شپیته زره وو. چه د لته د د وئ د یو څو نامورو خلیفه ګانو نومونه لیکلے شی.

(۱) حضرت سید اشرف جهانګیر سمنانی، عراقی، متوفی ۲۷ محرم سنه ۸۰۸ه

(۲) حضرت سید صدر الدین محمد الملقب په راجو قتال چه د حضرت مخدوم جهانیان خپل ورور وو. او مزار مبارک ئے په دهلی کښ دے. لیکن په بل روایت د د وئ مزار هم په اوچ کښ دے. په ۱۶ جمادی الاخر سنه ۸۲۷ه کښ وفات شوے وو.

(۳) حضرت سید علم الدین د ترمذی ساداتو د خاندان نه وو. اصلی وطن ئے قنوج وو. د مخدوم جهانیان مرید شو. جونپور ته لاړ. او هم هلته پاتے شو.

(۴) حضرت شیخ سراج الدین متوفی سنه ۸۲۰ه د قرآن مجید حافظ وو. مخدوم جهانیان ډیر کلونه وړپسے نمونځونه کذارلی وو. مزار مبارک ئے په کالپی کښ دے. د دے نه علاوه حضرت سید اشرف الدین مشهدی، سید علاء الدین حسینی سید محمود شیرازی، شیخ تاج الدین بهکری، مولانا عطاء الله، حضرت نور قطب عالم زاهدی او حضرت خواجه یحیٰ کبیر غورغشتی ئے هم مشهور خلیفه ګان وو. (د یحیٰ کبیر تذکره به راشی)

## روحانی اثار

لکه چه مخکښ ذکر اوشو حضرت مخدوم جهانیان جهان ګشت دوه ځله د تمامی دنیا سیاحت کړے وو. او په دویم ځل سفر کښ ورسره خپل مشهور مرید خواجه یحیٰ کبیر غورغشتی هم ملګرے

ووـ حضرت مخدوم چه دد ے دویم ځل سیاحت په دوران کښې د پښتو
بخوا" په کوم کوم ځائے کښې کرځید لے وو۔ او چرته چرته یئ چھلے او کښلے وی
عبادتونه او ریاضتونه یئ کړی وو۔ بیا روستو د هغه ځای مسلمانانو
حضرت سید جلال الدین حسین مخدوم جهانیان بخاری د عبادت
او ریاضت په دغه ځایونو باندے یا خو:-

(الف) خانقاهونه جوړ کړی دی۔

(ب) یا یئ پرے تسلی جوړ کړی دی۔

چه نن ورځ د عوامو پښتنو د بے علمئ، ناواقفیا۔ او بے خبرئ
په وجه د سید جلال الدین حسین بخاری د عبادت او ریاضت دغه
ټول ځایونه د "دوی د زیارتونو" په نامه مشهور دی۔ بلکه د ډیر
ساده توب په وجه تر دے حده قیصے کوُلے شی۔ چه حضرت
سید جلال بخاری علیه الرحمة او ده ځایه بنیخ دی۔ لاحول ولاقوة الا بالله

چنانچه هم دد ے بے خبرئ په وجه په سابق سرحد او قبائلی
علاقو کښې دد ے نمونے او ده ځایونه داسے موجود دی۔ چه هغے هر یو
ته د سید جلال بخاری زیارت وئیلے شی۔ د مثال په طور:-

(الف) د ریاست سوات په "ابوها" نومے مقام کښې د سید جلال بخاری
زیارت۔ (ب) په ضلع مردان کښې د مرکزی مقام مردان او هوتی ترمینځه
د آثار قدیمه وُد بخوانی ډهیرئ د پاسه هدیره کښې د سید جلال بخاری زیارت

(ج) د ضلع پیښور په اتمانزئ کښې د تنګی چارسده سړک په غاړه د کلی
جنوب طرفته د سید جلال بخاری زیارت۔

(د) په کرم ایجنسئ کښې د پورتنئ کرم په علاقه کښې د سید جلال
بخاری زیارت۔ ټول دد ے نه علاوه په پښتونخوا کښې چه نور هر
څومره زیارتونه د سید جلال بخاری زیارتونه نه دی۔ بلکه په



هغې کښې اکثر د حضرت مخدوم جهانی جهان ګشت آستانے دی۔ د عبادت
او د ریاضت چیله خانے او تکیه ګانے دی۔ او بعض داسے دی چه هغه
د دے مخدوم جهانیان په اولاد کښې د نورو سیدانو مزارونه دی چه
لفظ "جلال الدین" د هغوی د نومونو سره په طور د لقب ذکر شوے
دے۔ او خبره داغلطه ده۔ چه سید جلال الدین بخاری او ده ځایه
بنخ شوے ده۔

خبره دا ده چه لکه روستو به د مخدوم جهانیان د نامور خلیفه
حضرت خواجه یحیٰ کبیر غورغشتی په تذکره کښې هم پرے بحث راشی۔
هر کله چه په هغه زمانه د پښتونخوا د ټولو قبائیلو لوئ روحانی پیشوا
هم دغه سید جلال الدین حسین مخدوم جهانیان جهان ګشت وو۔ په
دے وجه هغوی د خپل نامور خلیفه خواجه یحیٰ کبیر غورغشتی د خواهش
مطابق د پښتنو د هر یو تمن۔ پښت او قبیلے سره چه په کومه کومه علاقه
کښې ورځے او شپے تیرے کړے وے۔ په دے غرض چه د خدائ د دغه مخلوق
ته امر معروف او د اسلام د نیکے لارے تبلیغ او هدایت اوکړی۔ او د شریعت
او طریقت په فیوضاتو باندے عام او خاص سرفراز کړی۔ نو په دغه
وجه په هغه زمانه عامو او خاصو ټولو خلقو به دده خانقاهونه خپلے آستانے
ګڼړلے۔ چه روستو د زمانے په تیریدلو۔ او ناواقفیا او کم علمئ په سبب
د هغے نه زیارتونه جوړ شول۔ او خبره تر دے حده راورسیده چه نن
وئیلے شی حضرت سید جلال بخاری او ده ځایه دفن دے۔

که فکر اوکړے شی۔ نو نن هم په ټوله پښتونخوا کښې هر هغه
ځائے متبرک ګڼړلے شی چه چرته کوم یو سپین سړی ناسته کړے وی۔
مګر افسوسناک شکل یئ داد ے۔ چه د یو بزرګ د ناستے د ځای نه
زیارت جوړ کړے شی۔ جهنډے پرے او لګولے شی۔ او ډیوے پرے بلے شی۔

او بيا زيا ته د افسوس خبره داده. چه هغه بزرګ چه کوم تعليمات مونږ
ته پريښي وي. يعنې د خداى او رسول لاره را ښيکول. د شريعت په
احکامو پوره پوره عمل کوول. او د نيکئ دينداري. ديانتدارئ پاکيزه
ژوند تيرول. دغه هر څه هير کړے شي. او فقط د يو بزرګ نوم ياد
او ساتلے شي. مونږ له د خپلو مشاهيرو بزرګانو د ژوند نه دا سبق
آخيستل پکار دي. چه د دنيا په دے خو ورځے ژوند کښ د آخرت د پاره
د نيکئ توښے کټلو کوشش او کړو.

## تاريخي فائده

دلته د تاريخي فائدے په خاطر د يو څو خبرو درج کوول مناسب ګڼړلے شي.
1 يو دا چه حضرت سيد جلال الدين بخاري ګنج علم (شهيد)
سنه ۳۸۶ هـ او حضرت سيد جلال الدين مير سرخ بخاري متوفي
سنه ۶۹۰ هـ په خاندانونو کښ لفظ د "جلال الدين" او "جلال" د هر يو
بزرګ د نوم سره په طور د خانداني لقب استعماليږي. يعنې څرنګه
چه د دوئ د نوم سره دويم نسبتي نوم بخاري ليکلے شي. د دے خبرے
د ښودلو د پاره چه د ساداتو دا خاندان د بخارا استوګن وو. دغه شان
د دوئ د نوم سره لفظ د جلال هم ليکلے شي. د حضرت مخدوم جهانيان
په يوولسم پشت کښ بره نيکه نوم احمد وو. چه قتال ئے عرف وو. ابو
يوسف او ابو محمود ئے کنيت وو. او جلال الدين ئے لقب وو. په سنه ۳۳۲ هـ
کښ پيدا شوے وو. او په سنه ۴۱۲ هـ کښ وفات شوے وو. د عراق نه
بخارا ته هم دے راغلے وو. چونکه جلال الدين د ده لقب وو. نو
روستو دا په خاندان کښ دا لقب په موروثي شکل کښ پاتے
شو. د مثال په طور د دے سيد احمد قتال د يو ځوئ نوم علي وو.
هغه په جلال الدين اکبر نامه مشهور وو. د دويم ځوي نوم ئے



حيدر وو. هغه په جلال الدين اصغر نامه باندے مشهور وو. او
بيا نه روستو د دے خاندان د هر يو فرد نوم سره دغه لقب مشهور
جلال الدين استعمال شوے ده.
دا چه پورته ذکر شو دا يوه داسے تاريخي نکته ده. چه د کومو خلقو
نه کردينه نه دے رسيدلے. هغوئ د ځان نه عجيبه عجيبه قيصے جوړے
کړے دي. ځکه مونږ او وئيل چه د حضرت مخدوم جهانيان اسم محضه
حسين دے. ابو المحمود ئے کنيت ده. جلال الدين ئے لقب ده. او بخاري
ئے نسبتي نوم ده. لکه د دوئ د نيکه نوم چه حسن دے. جلال الدين
او جلال اعظم ئے لقبونه دي. او مير سرخ بخاري ئے نسبتي نوم ده او د دے
تاريخي نکتے نه دا هم واضحه کيدے شي. چه هر کله د سابق صوبه سرحد
او قبائلي علاقو د بخاري ساداتو اکثر خاندانونه هغه دي چه د اوچ
بهاولپور نه را خوره شوي دي. لکه د علاقه اورکزي تيراه. کوهاټ
پيښور ښهر. هشتنغر. سوات او باجوړ. بخاري سيدان شول او په دے
کښ اکثر د مخدوم جهانيان د خاندان بخاري سادات دي. په دے وجه
د دے خاندان د اکثرو مشاهيرو بزرګانو د نومونو سره لفظ د "سيد
جلال الدين بخاري" په طور د خانداني لقب سره استعمال شويدے.
او ډيره ممکنه ده چه د پښتونخوا په علاقه کښ ځنے زيارتونه چه د سيد
جلال الدين بخاري په نوم مشهور دي. هغه د مخدوم جهانيان په
خاندان کښ د ډيرو روستو پيړئ د بزرګانو سيدانو زيارتونه
دي. بهرحال دا يو داسے سوال دے. چه زياتي نور تحقيق ته غواړي.
2 دويمه نکته دا ده. چه د پيښور ښهر د بخاري ساداتو په قلمي
شجره کښ د مخدوم جهانيان د نوم سره په طور د لقب "ګنج عالم"
ليکلے شوے دے. دا لقب په نورو تذکرو کښ وجود نه لري. البته

دَمخدوم جهانیان په نمسو کښې دَیو نمسی نوم داسې راغلې دې. سید عبدالرحمان گنج عالم ولد سید سراج الدین ولد سید ناصرالدین محمود ولد سید جلال الدین حسین مخدوم جهانیان. که مونږ دَ پیښور دَ شجرې په سند سره دَ مخدوم جهانیان دَنوم سره "گنج عالم" یولقبی نوم شمار کړو. نو دا به او وایو چه دا هم دَ هغه نومونے لقب دے. لکه دَ حضرت شیخ بهاءالدین ذکریا قدس سره دَ نوم سره چه "غوث العالم" لقب دے. یا دَ هغه دَ نمسی شیخ رکن الدین دَنوم سره چه "رکن عالم" لقب دے. مګر دلته ورسره دا هم یاد لرل پکار دی. چه دَ مخدوم جهانیان دَنوم سره دَ لقب په "گنج عالم" لوستل پکار وی. ځکه چه دَ سنه ۴۰۰ھ دَ زمانې دَیو بل سید جلال الدین بخاری تذکره چه مخکښې په تفصیل سره درج شوې دَه چه مزار مبارک یې په ملاکنډ ایجنسئ ریاست دیر کښې دے. دَ هغه لقب "گنج علم" دے. بایدچه د دے فرق لحاظ اوساتلے شی.

## بخاری سادات

مخکښې دے خبرے ته اشاره شوے دَه. چه په مغربی پاکستان کښې دَ بخاری ساداتو اکثر خاندانونه دَ اُوچ نه خوارۀ شوی دی. او په دوی کښې زیات تعداد دَ مخدوم جهانیان دَ کورنئ دے. دَ معلوماتو دَزیاتوالی په خاطر ددے مبارک خاندان په اختصار سره بیان مناسب معلومیږی.

دَحضرت سید جلال الدین حسین بخاری مخدوم جهانیان پنځه ځامن وو. نومونه یې دادی:-

(۱) سید حاجی ناصرالدین (۲) سید بهاؤالدین (۳) سید مکرم الدین (۴) سید حسن الدین (۵) سید نورالدین.

په دوی کښې دَحضرت مخدوم دَ مشر ځوئ سید ناصرالدین لس ځامن وو چه نومونه یې دادی:-



سید حامد کبیر. سید علم الدین. سید شهاب الدین. سید اسماعیل. سید سراج الدین. سید فضل الله. سید برهان الدین (ددهٔ اولاد په گجرات دے.) سید منورالدین المعروف بنډگی شیخ الاسلام (ددهٔ اولاد دَ بهارت په قنوج نومے ښهر کښې دے.) سید نظام الدین (ددهٔ په قبایلی علاقه اورکزائے تیراه کښې دے.)

لکه چه مخکښې ورته اشاره شوے دَه. دَحضرت مخدوم دَ مشر ځوئ ناصرالدین محمود دَ پنځم ځوئ سید سراج الدین دَ ځوئ نوم سید عبدالرحمٰن "گنج عالم" وو. ددے حضرت سید عبدالرحمٰن دَ ځوی نوم سید رکن الدین وو. بیا ددهٔ دَ ځوی نوم سید بڼ ها شاه وو. بیا دَ هغه دَ ځوئ نوم وو.

حضرت سیّد شاه رحمت اللهؒ جهانګلا موج دریا

چه په موضع منګوره علاقه خوشحال ګړه ضلع کیمبل پور کښې یې زیارت دے. ددهٔ درے ځامن وو.

(۱) سید کنجکوارا (۲) سید امام علی (۳) امام حاجی شاه. د دے درے وارو ځامنو قبرونه هم دَ خپل پلار حضرت موج دریا سره په موضع منګوره کښې دی. بیا په دوئ کښې دَ حضرت سید امام حاجی شاه درے ځامن وو. دَیو ځوئ نوم وو.

## سید نبی شاه علیه الرحمة

چه دَ ضلع پیښور دَ علاقه مهمند خصوصاً آدزی، متنی او کوهاټ ښهر دَ بخاری ساداتو خاندانونه ددهٔ اولاد دے. ددے سید نبی شاه په پنځم پښت کښې ښکته دَیو نمسی نوم وو.

## سید حسن شاه علیه الرحمة

دا سید حسن شاه دَ سنه ۱۰۵۰ھ په شاؤ خوا کښې دَ موضع آدی زی.

متنی نه کوهاټ ښهرته تلي وو. اوهلته د کوهاټ ښهرپه محله جنګل خیل کښې آباد شوے وو. اولاد یې تراوسه دغلته آباد دے. ډیره عزتمنده روحاني، علمي اوادبي کورنۍ ده. ددے خاندان نامور افراد وپه تیرودرے سوه کلونوکښې په دے ملک د اسلام ډیرخدمت کړیدے. د پښتوژبے نامورادیب پیرمطیع الله هم په دے خاندان کښې تیرشوے. دده دیومشهورمناجات ابتدائي دوه شعرونه داسے دي.

خبرزده کړه آګاهُو :: معبود نشته بے یاهُو
تل یاهُوکړه په زړه هو :: په دنیا مکړه هاهُو

دحضرت سید حسن شاه د نسب شجره داسے ده. سید حسن شاه بن سید ګوهرشاه بن سید رنګ شاه بن سید شیرشاه بن سید نجیب شاه بن سید نبی شاه بن سید حاجي شاه بن سید رحمت الله موج دریا علیهم الرحمة والغفران.

## حضرت سیّد محمود پیر علیه الرحمة

دحضرت سید امام حاجي شاه د دویم ځوی نوم وو حضرت سید محمود پیر علیه الرحمة چه د پېښور ښهر. تحصیل پېښور خصوصاً موضع دلازاک اوکانکوله وغیره د بخاري ساداتو خاندانونه دده په اولاد کښې دي. د ضلع کیمبل پور د علاقے نه په اول سر کښې هم دغه حضرت سید محمود پیر پېښور ښهرته تشریف راوړے وو. بیا دے ځائ نه موضع دلازاک ته لاړل. اوهلته آبادشول. روستو ترینځه دوپښتو پورے داخاندان هم هلته په دلازاکو کښې آباد وو. او بیا د دغه ځائ نه دوباره ددے خاندان سادات پېښور ښهرته راغلي دي. پدے نزدے زمانه کښې سیّد آغا لعل بادشاه په دے خاندان کښې مشهور تاریخي اوسیاسي شخصیت تیرشویدے. په پېښور ښهر کښې د بخاري ساداتو



بوه بله کورنۍ هم ده چه په کریم شاهي بخاري ساداتو مشهوره ده. دوئ د نسب شجره حضرت سید محمد غوث لکه چه مخکښې اشاره شوے وه. د حضرت مخدوم جهانیان مشرتره استاذ او پیر طریقت هم وو.

## حضرت میران محمد شاه موج دریا بخاری رح

د حضرت مخدوم جهانیان په اولاد کښې په سنه ۱۰۱۳ھ کښې یو بزرګ نمسے پیرشوے. چه د هغه نوم "محمد" وو او په حضرت میران محمد شاه بخاري مشهورو. د اوچ نه لاهورته راغلے وو. شهنشاه جلال الدین اکبر ورسره خصوصي عقیدت لرلو. د دوئ د خانقاه د اخراجاتو د پاره یې په لاهور او بټاله کښې د یو لاکهه روپو جاګیر بخښلے ده. د دوی دوه ځامن وو. سید صفي الدین او سید بهاءالدین چه د دے دواړو اولاد په لاهور او بټاله کښې آباد دے. او لکه چه مخکښې اشاره اوشوه حضرت میران محمد شاه رح په سنه ۱۰۱۳ھ کښې وفات شوے دے. علیه الرحمة والغفران.

## سید احمد بخاری

دحضرت سید محمود ناصرالدین اول ابن مخدوم جهانیان رح د یوی ځوی نوم سید فضل الدین وو. د هغه د ځوی نوم سید علاءالدین وو. چه مزار یې په کشمیر کښې دے. بیا د ده د ځوی نوم سید ضیاءالدین وو. او بیا د ده د ځوی نوم سید احمد وو چه د کشمیرنه د ضلع کیمبل پور علاقه چچ پرهلي نومکلي ته راغلي وو. د ضلع مردان موضع لاهورته راغلے دوباره بیا پرملي ته تلے وو. مزاریې په پرملي کښې دے. ددے حضرت سید احمد..... د ځوی نوم سید جمال الدین چه مزاریې په قصبه لاهور میدان کښې دے.

# حضرتِ سیّد پیر ابراهیم بخاری علیه الرحمة

ولادت ———————— ملتان

وفات ———————— قبائیلی علاقه باجوړ

په قبائیلی علاقه باجوړ کښې د سادانو ګڼ خاندانونه آباد دی. لکه سادات بنوړخیل[1]، سادات مشوانی[2]، سادات تارن[3]، سادات ترمذی[4] (د پیر بابا اولاد) سادات مکی[5] (حاجی خیل سادات) سادات ابراهیم خیل[6]، سادات کاکاخیل[7]،

په باجوړ کښې د ترکلانی قوم مختلفې قبیلې چه په هرځو مره علاقو وادی کانو، درو او رود بار کښې آباد دے. په هغې کښې د دے قوم د کل مقبوضه جایداد پنځمه حصه د دے سادانو سیرۍ ده. په دے سادانو کښې ډیر لوئی لوئی عالمان او بزرګان تیر شویدی. او هر کله چه د ترکلانی قوم د ټولو قبیلو. لکه ماموند، سلارزائی، اسماعیل زائی، عیسیٰ زائی خلق د عالمانو او سادانو مشائخو ډیره قدر او احترام کوی. چه پخپل مجموعی جایداد او ملکیت کښې د دغه پنځمه حصه ئې د وی ته په طور د سیرۍ ورکړے ده. نو همدغه وجه ده چه د دے عالمانو او بزرګانو د فیوضاتو له برکته په دے علاقه کښې د دین اسلام عزت او حرمت له حده زیات دے. او خلق ئې په دین مئین دی. دینداره او اهل سنت والجماعت مسلمانان دی.

د قبائیلی علاقې باجوړ د ابراهیم خیلو سادانو مورث اعلیٰ حضرت شیخ المشائخ سید ابراهیم بخاری علیه الرحمة دے. چه مقامی طور په پیر ابراهیم بابا باندے مشهور دے. دے د خپلے زمانے لوئی ولی الله تیر شوی دے. او د دین اسلام د اشاعت او تبلیغ او د معرفت او طریقت د فیوضاتو د خوړلو د پاره ئې دے علاقې ته تشریف راوړے وو. د ده شجرهٔ د نسب حضرت سید جلال الدین حسن میر سرخ بخاری علیه الرحمة ته رسیږی.



مخکښې مونږ د حضرت سید جلال الدین میر سرخ په تذکره کښې بحث کړیدے. چه د د وی د مشرځوی نوم سید محمد غوث کبیر وو. او د دویم ځوی نوم ئې سید سلطان احمد کبیر وو. حضرت سید جلال الدین حسین مخدوم جهانیان جهان ګشت د دغه کشری ځوی فرزند ارجمند وو. چه مخکښې ئې تذکره بیان شوه. او د حضرت پیر ابراهیم بابا د شجرے وضاحت دا دے.

د قبائیلی علاقې باجوړ او قبائیلی علاقې مهمند د بخاری سادانو په شجرو کښې د حضرت پیر سید جلال الدین میر سرخ د مشرځوی نوم سید محمد غوث کبیر درج دے او بیا د هغه د ځوی نوم سید غوث بیان شویدے چه د حضرت سید ابراهیم بخاری باجوړی علیه الرحمة سلسله د وی ته رسیږی شجرهٔ د نسب ئې دا سے ده:-

سید ابراهیم بخاری[1] ابن سید عزیز الله[2] بن سید نور الله ثانی[3] بن سید فتح الله[4] بن سید نور الله اول[5] بن سید نور محمد[6] ابن سید نور الدین[7] ابن سید ابو سعید[8] مبارک بن سید غوث[9] بن سید محمد غوث[10] ابن سید ابو البرکات جلال الدین حسن میر سرخ[11] بخاری بن سید علی ابو المؤید[12] بن سید ابو علی جعفر[13] بن سید صفی الدین محمد[14] ابو الفتح بن سید محمد[15] بن سید محمود اصغر[16] بن سید احمد[17] قتال ابو یوسف بن سید عبد الله[18] بن سید علی اشتر[19] بن سید عبد الله جعفر ثانی[20] بن سید امام حسن[21] عسکری بن سید امام علی نقی[22] بن امام محمد تقی[23] بن امام رضا[24] بن امام موسیٰ[25] کاظم بن امام جعفر صادق[26] بن امام محمد باقر[27] بن امام علی زین العابدین[28]

ابن سید الشهداء امام حسین رضی الله عنهم اجمعین

مخکښې مونږ دا بحث کړیدے چه د قبائیلی علاقې باجوړ او مهمند په شجرو کښې د سید عبد الله جعفر ثانی د پلار نوم سید امام حسن عسکری شویدے. لیکن د ګوهر ګرهی د بخاری سادانو بیان دا دے چه حضرت سید امام علی نقی

درے ځامن وو۔ (۱) امام حسن عسکری (۲) سید حسین (۳) جعفر ثانی
په وی کښې د سید ابراهیم بخاری د مورث اعلیٰ میر سرخ بخاری د نسب شجره حضرت
سید جعفر ثانی ته رسیږی لکه چه د حضرت سید علی ترمذی پیر بابا
د نسب شجره چه حضرت امام حسن عسکری ته رسیږی۔ او د قبائیلی علاقے
مهمند د سید شیخ ذکریا شجره چه حضرت سید حسین ته رسیږی۔

حضرت سید ابراهیم قدس سره په شجره کښې د حضرت میر
سرخ بخاری په یوولسمه پیړۍ کښې بنسے دے۔ هرکله چه حضرت میر سرخ
بخاری په سنه ۶۹۰ھ کښے وفات شوید ے۔ او د علم اصول تاریخ د یو روایت مطابق
په یوسل کاله کښې درے کسان راتللے شی۔ نو په دغه حساب حضرت پیر ابراهیم
د سنه ۱۰۲۳ھ د زمانے بزرگ دے۔ او په تاریخی اعتبار سره حضرت پیر سید
علی ترمذی پیر بابا او حضرت شیخ ابراهیم بابا دواړه د یوے زمانے بزرگان دی۔
او دواړه د شیخ سالار رومیؒ مریدان هم دی۔

د حضرت سید پیر ابراهیم بابا متعلق د باجوړ او مهمند د سیدانو
د شجرو بیانونه مختلف دی۔ د مهمندو د شیخانو سیدانو روایت دا دے۔ چه دے د
باجوړ قبائیلی علاقے ته د غزنی نه راغلے دے۔ او د باجوړ د پیر ابراهیم خیلو
سیدانو خپل صحیح روایت دا دے۔ چه دے د ملتان نه د موجوده ضلع کیمبلپور
پنج نوے علاقے ته او بیا د هغه ځائ نه د باجوړ د ماموندو علاقے ته راغلے وو۔
...آباد شوے وو۔ او هم دلته وفات شوید ے۔ او مزار مبارک یے د ماموندو په
علاقه کښې په وادئ چارمنګ کښې د کوټکی نومے کلی خواته دے۔ د ولادت او
وفات دواړه صحیح تاریخ یے تر دے وخته پورے راته معلوم شوی ندی۔ البته
زمانه یے هم هغه سنه ۱۰۲۳ شاوخوا ده۔ او په سنه ۱۰۰۴ھ کښې باجوړ ته راغلے دے۔
د باجوړ د پیر ابراهیم خیلو سادات روایت دے چه د حضرت سید
ابراهیم د ځوئ نوم سید اسماعیل و چه د هغه دوه بیبیانے وے۔ یوه د پیر بابا لور...



د هغے نه یے دوه ځامن پیدا شوی وو۔
(۱) میاں نور محمد چه مزار مبارک یے په باجوړ وادئ بابو قره موضع چورک
کښې دے۔ په چورک بابا یادیږی۔
(۲) میاں شاه نور چه زیارت یے د بابو قره په ډانډوکئ نومے کلی کښې دے۔ د
سید اسماعیل دویمه بی بی په تمام مومندو پښتنه وه۔ د هغے نه یے یو ځوئ
پیدا شوے وو۔ سید جلال علیه الرحمه۔ دے په خپل ژوند کښې د علاقه چارمنګ
په وادئ جندول ته راغلے وو۔ دلته آباد شوے او دلته بیا وفات شوے هم وو۔ په
تاریخی اعتبار سره د سنه ۱۰۸۹ھ د زمانے بزرګ دے۔ د ده مزار مبارک د وادئ جندول په
دره شالکنډی موضع بهنګنړ کښې دے۔ د حضرت سید جلال درے ځامن وو
(۱) دیو ځوئ زیارت د تاکره سره نزدے په موضع ړوپ کښې دے۔
(۲) د دویم ځوی زیارت په دره شالکنډی موضع "کودر" کښې دے۔
(۳) د دریم ځوئ سید مشهور نوم وو۔ د ده زیارت د پلار د مزار سره یو ځای دے۔

روستو د میاں مشهور ځوئ او میاں نشان د هغه ځوئ وو۔ میر
سید د هغه ځوئ وو سید شمال بیا د هغه ځوئ وو سید فلام ترے پنځم
پشت پورے د سادات دا خاندان د باجوړ په جندول نومے علاقه کښې اوسیده
او د دوئ پنځو واړه وزیارتونه په دره شالکنډی کښې دی۔ چه اولاد یے نن ورځے
په دے لاندې کلو کښې آباد دی۔ کودر، شیخنجی، ټوپ، بازارک، شډلس
بغرئ، مولی، ډبکیړ، ډینګی سار وغیره (دلته دا یاد لرل پکار دی۔ چه
بغرئ، مولے نومے کلی د وادئ میدان په دره انګو پڅه کښې دی۔ او د بغرئ
کلی نوم نن ورځے په چنارکوټ باندے بدل شوے دے۔)
د سنه ۱۲۵۴ھ په شاوخوا کښې د حضرت سید غلام محمد علیه الرحمه
ځوئ سید حیدر د وادئ جندول نه د وادئ میدان چنارکوټ نومے ځائے
ته راغے۔ او دلته آباد شو۔ د سنه ۱۲۸۷ھ په شاوخوا کښې وفات شوید ے۔

او مزار مبارک یې په چنارکوټ کښې دے. د دلا دَ څوئ نوم سید ابوالحسن وو. او دَ هغه نه یې دَ اولاد سلسله پاتے دَه. چه سید جعفر نوے حوٹے یې اوس ژوندے دے.

په مجموعی اعتبار دَ بخاری ساداتو دَ ابراهیم خیل خاندان سیدان دَ باجوړ په علاقه ماموند. بابوقره. جندول. میدان. برول. روبار او چارمنګ کښې آباد دی. دَ شریعت او طریقت سجاده نشین خاندان دے. او دے علاقه دَ دینی او روحانی رهنمائیے په سلسله کښې یوه مبارکه کورنۍ دَه.

دَ بابر، همایون او دَ اکبر دَ حکومت په ابتدائی ورځو کښې چه باجوړ دَ مغلیه حکمرانانو په قبضه کښې وو. نو په باجوړ یو سالانه خراج مقرر وو. دَ حضرت سید ابراهیم بخاری په زمانه کښې چه دَ شهنشاه اکبر امیر زین خان کوکه باجوړ دوباره رعیت کړ. نو حضرت سید ابراهیم له یې په سنه ۱۰۰۲ھ کښې دَ یو فرمان په ذریعه دَ علاقه باجوړ خراج په جاګیر کښې ورکړ. دَ شهنشاه جلال الدین اکبر دغه تاریخی فرمان چه دَ ابوالفضل علامی دستخط هم پرے موجود وو. دَ سید ابراهیم بخاری دَ خاندان سره موجود دَه. چه دَ تانبے په یوه لوحه تختی کنده شوے لیک وو. د دے نه هم معلومیږی چه دَ باجوړ دَ قبائیلو دَ پاره د دے ساداتو دَ مبارک خاندان وجود څومره دَ برکت باعث وو. علیهم الرحمة والغفران.

| | | |
|---|---|---|
| سنه ۹۷۴ھ<br>شهنشاه عبدالاکبر | بسم الله الرحمن الرحیم | سنه ۹۷۴ھ<br>شهنشاه عبدالاکبر |

در سنه ۱۰۰۲ھ باجور سید ابراهیم ولد سید عزیز الله را بخشیدم وجه آن بود که من بیمار بودم. در آن وقت او از ملتان آمد دعا از برائے من کرد است و دعائے او خداوند کریم قبول کرد از آن وقت مرا صحت شد. ازین سبب من باجور او را بخشیدم. از دریائے کنړ تا دریائے پنجکوړه وانر بیابان بکړ تا غار ګنور من او را بخشیدم.

جلال الدین اکبر شاه. ولد نصیر الدین همایون شاه
سید ابراهیم ملتانی ولد عزیز الله
ولد ظهیر الدین بابر بادشاه. ولد سید نور الله. الراقم مفتی ابوالفاضل.



# حضرت شیخ مولانا عبدالوهاب رح

## المعروف اخون پنجو بابا علیه الرحمة

ولادت ـــــــــ تره کئی ضلع مردان سنه ۹۳۷ھ
وفات ـــــــــ اکبرپوره ضلع پیښاور سنه ۱۰۴۰ھ

حضرت مولانا شیخ قدوة العلماء والعارفین عبدالوهاب المعروف په اخون پنجو بابا علیه الرحمة دَ اکبرپورے دَ پیښور یو مشهور عالم او روحانی شخصیت تیر شویدے. چه دَ شمال مغربی پاکستان په اولیائے کرام کښې ډیر اوچت مقام ورته حاصل دے. په سنه ۹۳۷ھ کښې پیدا شوے او په سنه ۱۰۴۰ھ کښې دَ ۱۰۳ کلو په عمر وفات شویدے. علیه الرحمة والغفران.

دَ ځما دَ مطالعے او معلوماتو مطابق دَ دوئ حالات په لاندینو کتابونو کښې ذکر شویدی. تذکرة الابرار[1]. آئین اکبری[2]. مناقب[3] دَ شیخ عبدالوهاب. چه په دے نوم کښې و کسانو کښې کتابونه لیکلی دی. مثلاً (۱) مؤلف اخوند سالاک (۲) تالیف دَ شیخ عبدالغفور (۳) تالیف دَ شیخ میان علی (۴) تالیف دَ ملا خاکی (۵) او تالیف دَ میان بادشاه. سلوک الغزاة[8]. آئینه تصوف[9]. بیاض دَ میان غلام صدیق[10]. بیاض دَ میان ابوحامد[11]. تحفة الاولیاء[12]. دَ پښتو دَ ادب تاریخ[13]. پښتانه شاعران[14]. تذکره شیخ رحمکار[15]. تاریخ یوسفزائے[16]. مشائخ وعلماء سرحد[17].

دلته اول دَ تحفة الاولیاء په روایت دَ مولانا عبدالوهاب حالات په اختصار سره درج کوؤ ځکه چه د دے کتاب په بیان کښې بعض داسے تاریخی نکتے دی چه دَ هغې وضاحت او دَ نورو تذکرو دَ بیانونو سره یې تطبیق ضروری دے. وروسته به دغه پورته ذکر شوو تولو کتابونو او دَ هغې دَ بیانونو په تاریخی پس منظر باندے یوه تاریخی او تحقیقی تبصره درج کوؤ ځکه مناسب کنړو. چه د دے مشهور او نامور عالم او روحانی پیښوا

796

# حضرت سیّد عبد الحکیم بخاری علیه الرحمة

ولادت ــــــــــــ پیبنور سنه ۱۱۵۵ھ

وفات ــــــــــــ کجرگړهی مردان سنه ۱۲۳۶ھ

حضرت مولانا شیخ المشائخ میاں اخوند سید عبد الحکیم بخاری علیه الرحمة په قوم بخاری حسینی سید وو. دده والد ماجد، دده نیکه او ورپسے دده خاندان پورتنی ترلسو نیکونه پشت په پشت دَ ولایت او کرامت خاوند ان لوئ عالمان او سجاده نشین بزرګان تیر شوی دی. او دَ مغربی پاکستان په شمال مغربی علاقو کښې د دین اسلام کوم خدمت چه ددے خاندان بزرګانو کړے دے. او دَ ظاهری او باطنی علمونو کوم فیوضات چه دوی خواره کړیدی. هغه ددے ملک دَ تاریخ یو زرین باب دے.

دَ حضرت سید جلال الدین حسین المعروف په مخدوم جهانیان جهان ګشت بخاری علیه الرحمة په پنځم پشت کښې نیکه نوم حضرت سید ابو علی جعفر علیه الرحمة وو. چه په سنه ۵۷۵ھ کښې وفات شوے دے. او مزار مبارک ئے په بخارا کښې دے چه شجره دَ نسب ئے داسے ده. سید جلال الدین حسین [1] ابن سید سلطان احمد [2] کبیر ابن سید جلال الدین حسن [3] الملقب په میر سرخ بخاری ابن سید علی [4] ابو المؤید (متوفی سنه ۵۱۶ھ) مزار بخارا ابن سید ابو علی [5] جعفر علیه الرحمة. دَ دے سید ابو علی جعفر یو ځوئ سید علی ابو المؤید وو. چه دَ حضرت مخدوم جهانیاں مشر نیکه وو. او دویم ځوئ ئے حضرت سید عبد الغفور علیه الرحمة وو چه په څوارلسم پشت کښې دَ حضرت اخوند میاں عبد الحکیم بخاری نیکه دے. او شجره دَ نسب ئے داسے ده. حضرت مولانا اخوند سید عبد الحکیم [1] ابن سید یار محمد [2] ابن سید لعل محمد [3] ابن سید تاج محمد [4] ابن سید یار علی [5] ابن سید ابراهیم [6] ابن سید حسین [7] ابن سید علی بلخی [8] ابن سید ناظر [9] ابن سید شاکر [10] محمد ابن سید عبد الکریم [11] ابن سید ...ز الدین [12] ابن سید ابو الفتح [13] ابن سید



عبد الغفور [14] ابن سید ابو علی جعفر [15] ابن سید محمد [16] ابو الفتح صفی الدین (متوفی سنه ۵۱۹ھ) ابن سید محمود [17] اصغر بخاری (متوفی سنه ۴۷۷ھ) ابن سید ابو یوسف جد قتال [18] (متوفی سنه ۴۱۳ھ) ابن سید عبد الله [19] (متوفی سنه ۳۵۲ھ) ابن سید علی اشتر [20] (متوفی سنه ۳۲۱ھ) ابن سید جعفر [21] ثانی ابن حضرت امام علی [22] نقی ابن حضرت امام محمد [23] تقی ابن حضرت امام علی [24] رضا ابن حضرت امام موسیٰ [25] الکاظم ابن حضرت امام جعفر [26] صادق ابن حضرت الامام همام محمد [27] باقر ابن حضرت امام زین العابدین [28] ابن حضرت سید الشهداء امام حسین [29] ابن علی ابن ابی طالب رضوان الله تعالیٰ عنهم اجمعین ط

## حضرت سیّد لعل محمد بخاری

دَ حضرت سید عبد الحکیم بخاری نیکه یعنی دَ پلار پلار حضرت سید لعل محمدؒ په ننګرهاری نامه مشهور دے. چه په سلسله عالیه نقشبندیه کښې دَ حضرت مولانا شیخ عبد الغفور پیشاوری قدس سرہ خلیفه وو. او هم دا هغه نامور بزرګ حضرت سید لعل محمد ننګرهارے دے. چه دَ بلوچستان دَ مشهور بزرګ حضرت میاں عبد الحکیم کاکړ ابتدائی تربیت ئے کړے وو. او بیا روستو ئے دَ زیاتی تربیت دَ پاره خپل پیر طریقت شیخ عبد الغفور پیشاوری ته لیږلے وو. مزار مبارک ئے په ننګرهار (سمت مشرقی افغانستان) کښې دے.

## حضرت سید یار محمد بخاری

دَ حضرت مولانا سید لعل محمد ننګرهارے فرزند ارجمند او دَ حضرت میاں عبد الحکیم والد ماجد حضرت مولانا سید یار محمد بخاری په یار محمد کابلی نامه مشهور دے او په سلسله نقشبندیه په بزرګانو کښې ډیر اوچتے مرتبے خاوند دے. دَ ظاهری او باطنی علومو فیض ئے دَ خپل والد ماجد او دَ هغوی دَ پیر طریقت مولانا شیخ عبد الغفور پیشاوری نقشبندی نه حاصل کړے وو. روستو دَ ننګرهار نه پیبنور ښهر ته راغلے وو او دلته استوګن شوے وو. په دینی علمونو کښې درجه دَ فضیلت ورته حاصله وه. لوئ عالم او کامل عارف وو. دَ علم عقائد او علم فقهه په موضوع دَ دوی یو تحقیقی کتاب ما

بلکه کامل عارفان هم وو. او پدغه وجه دَ هغوئ په درس کښې یو خاص قسم له اثر او برکت وو. داد ومره بختور جماعت دے. چه کوم طالب علما نو پدے کښې درس لوستلے دے. هغه پخپله زمانه دَ علمی فضیلت او شهرت او چتے مرتبے ته رسیدلی دی. لکه پدے نزدے زمانه کښې حضرت شیخ المشائخ اخوند عبدالغفور المشهور بابا جی صاحب دَ سوات شو. یا مولانا پائینده محمد عثمان خیل مهمند شو. چه دے دواړو هم په دے جماعت کښې درس لوستلے دے.

لکه چه مخکښې ورته اشاره اوشوه. دَ حضرت میاں عبدالحکیم بخاری دَ وفات نه روستو دده په اولاد او نمسو کښې هم دَ اسلام دَ ظاهری او باطنی علمونو دَ درس او تدریس دا سلسله پاتے شوے ده. او ډیر لوئ بزرگان او فاضلان عالمان پکښې تیر شوی دی. او دَ دینی علمونو دَ قلمی کتابونو یوه لویه ذخیره ئے روستو راتلونکو نسلونو ته پریښے وه چه دَ هغے نه دَ خدائ مخلوق ته لوئ فیض رسیدلے دے. او په خصوصیت سره ما (عبدالحلیم اثر) ترینه ډیره فائده او چته کړے ده. جزاهم الله خیر الجزاء

هر کله چه دَ بخاری سادات و دے خاندان کورنئ دَ مغربی پاکستان په نورو ځایونو کښې خوره شوی نه ده. په غیر دَ هغه خاندانونو نه چه په افغانستان کښې. یا په دے کلی کجو کړهی کښې آباد دی. په دے وجه دَ حضرت میاں عبدالحکیم بخاری نقشبندیؒ دَ اولادیوه مختصره شان شجره دلته راوړلے شی. چه دے په ذریعه به دے مبارک خاندان دَ روستو زمانے دَ بعض نامورو بزرگانو حالات هم معلوم کړلے شی.

دَ حضرت مولانا میاں عبدالحکیم بخاری دَ ځوئ نوم سید عبدالرحیم وو. چه دَ هغه دَ ځامنو نومونه دا دي :-

(۱) سید میر غیاث الدین چه بیا دده دَ ځوئ نوم سید حسن وو.

(۲) سید معظم الدین. چه دده دَ ځوئ نوم سید حمید شاه وو. او بیا دَ هغه دوه ځامن وو. ۱ سید غنی شاه. ۲ سید احمد شاه.

(۳) سید میر حبیب الله چه دَ هغه ځوئ نوم سید افضل شاه وو. چه په



(عبدالحلیم اثر) دَ طالب علمئ په ورځو کښې لیدلے وو. چه دده نه علاوه دَ علم فقه په اکثر کتابونو دَ دوئ حاشیے هم موجودے دی. مزار مبارک ئے په پیښور کښې دے.

حضرت مولانا اخندزاده سید عبدالحکیم بخاریؒ دده جلیل القدر پلار او نیکه نامور فرزند وو. دینی علمونه ئے دَ خپل والد ماجد نه او ورپسے دَ حضرت میاں محمد عمر دَ چمکنو نه لوستلی وو. او چه په علوم ظاهری کښې درجه دَ کمال ورته حاصله شوه نو دَ طریقت او معرفت سبقونه ئے په طریقه نقشبندیه کښې دَ حضرت میاں محمد عمر چمکنی علیه الرحمه نه اخیستی وو. ډیر موده ئے دَ خپل پیر طریقت په صحبت کښې تیر کړے وو. او خرقه دَ خلافت ئے حاصله کړے وه. مسعود کل پاسنے دَ دوئ په حقله لیکی :-

دارنګ نقل کاندی میاں عبدالحکیم :: چمکنو کښې ډیر مدت وو زره مقیم

دغه رنګ دا دین هم دَ اخونزاده عبدالحکیم یو بیان نقل کړے دے. چه دَ هغے نه دَ حضرت میاں محمد عمر قدس سره دَ دوئ خصوصیت معلومیږی. لیکی :-

دا کوېل چه عبادت خانه خاصه وه :: دَ انوارو دَ اسرارو خلاصه وه
خادمان هم ورته ناست وو په حضور کښے :: په حضور دے کامل فائض النور کښے
ولے نو رسول مترخص دد غه ځایه :: یو زه پاتے بل صاحب وو خوشنمایه

حضرت سید اخوند عبدالحکیم بخاری دَ خپل پیر طریقت په اجازت سره دَ ضلع مردان موضع کجو کړهی ته تشریف راوړے او دلته استوګن شوے وو. چه روستو هم دلته په سنه ۱۲۳۶ھ کښې وفات شو. دَ دوئ دَ قیام په برکت سره کجو کړهی دَ دینی علمونو دَ درس او تدریس مرکز ګرځیدلے وو. او چه په کوم جماعت کښې دوئ درس ورکولو. روستو بیا هغه دَ میاں عبدالحکیم په جماعت مشهور شو. او تر ډیرے زمانے پورے دَ دینی علمونو دَ مشهورو او بختور درسګاه حیثیت ئے درلو. وجه ئے دا وه چه دَ دے دینی درسګاه استاذان چه هغه پښت په پښت دَ میاں عبدالحکیم بخاری دَ خاندان افراد وو. هغه یواځے عالمان نه وو

تورمیاں مشہور وو۔ او بیا دَ هغه پنځه ځامن وو۔ سید احمد۔ سید فضل محمد
سید ابوبکر۔ سید عبداللہ۔ سید محمد

(۴) سید حمید چه دَ هغه دَ ځوئ نوم سید محمد عمر وو۔ او بیا دَ هغه شپږ ځامن وو۔ سید ابوالقاسم۔ سید رسول۔ سید عبداللہ۔ سید غلام محمد سید شاہ رسول۔ سید محسن شاہ۔

(۵) سید محمد عیان دَ هغه دَ ځوئ نوم وو۔ سید زر شاہ دَ هغه دَ ځوئ نوم وو سید علی او بیا دَ هغه دوه ځامن وو۔ سید ولی۔ سید خان ولی۔ په دوئ کښې بیا دَ سید احمد ولد سید افضل شاہ ولد سید میر حبیب اللہ دوه ځامن وو۔

(الف) علی احمد چه بیا دَ هغه درے ځامن وو۔ فضل رحیم۔ فضل دیان۔ فصیح اللسان۔ په دوئ کښې دَ سید فضل دیان دَ ځوئ نوم سید حبیب الرحمن دے چه ځما ډیر مشفق دے۔

(ب) غلام حبیب چه بیا دده پنځه ځامن وو۔ سید محمد امین۔ سید روح الامین۔ سید نصر اللہ۔ سید سعد اللہ۔ سید عبد المفتاح چه په دوئ کښې سید روح الامین نن ورځے قاضی شریعت دے۔

## حضرت ابوبکر علیہ الرحمۃ

په دوئ کښې حضرت مولانا سید ابوبکر ابن سید فضل شاہ ابن سید میر حبیب اللہ دده مبارک خاندان په روستنو مشرانو کښې لوئ فاضل عالم او کامل عارف وو۔ په سنه ۱۳۰۹ھ کښې ئې په مقام دَ بمبئی (بهارت) دَ حضرت سید محمد صالح قادری جیلانی نه په سلسله عالیه قادریه کښې بیعت کړے وه۔ دَ هغے دَ اول نه حضرت موصوف چه دَ اجازت ورله کوم لیکلے سند ورکړے وو۔ او روستی یو څو جملے دلته درج کوو چه دد ے نه دَ حضرت سید ابوبکر علیه الرحمۃ دَ مرتبے دَ لوئ والی اندازه لګول آسان شی۔ فرمائی:-



هذه شجرة اصلها اصیل وفرعها نبیل وحاملها رجل جلیل اسأل اللہ ان یرزقه الاستقامة بحرمة سیدنا محمد المهبط علیه الوحی والتنزیل مفیتها وانقذتها وانا افقر الورٰی وخادم الفقراء السید محمد صالح القادری الجیلانی ....... اما بعد فان الرجل الصالح الکامل المقبل علی مولاہ المعرض عمن سواہ الراغب فی دار الآخرة الدهر ویش سید ابوبکر ابن سید فضل شاہ مرحوم جاء الینا بعد قدومنا فی ولایة بمبئی (من الهند) وطلب و التمس منا الدخول فی سلک الطریقة القادریة فرأیته رجلاً صالحاً فلقنته کلمة التوحید بادلتها واضحة عن شیخی والدی السید الشیخ خمیس القادری علیه الرحمة۔

په هغه زمانه چه بهرحال مره دَ مذهبی احکامو فتوئ په برصغیر پاک وهند کښې چاپ شوے دی۔ په هغے کښې په اکثرو باندے دَ حضرت مولانا شیخ ابوبکر علیه الرحمۃ مهر او دستخط موجود دے۔ یادده دَ مشر ورور مولانا سید احمد المعروف به "میاں صاحب دَ کوجر کړهی" مهر او دستخط دے۔

علیهم الرحمة والغفران۔

---